

**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي لارښود
# اسلامي ښوونه او روزنه
## دویم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ. ش.





moe.curriculum@gmail.com




د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو
د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د ښوونکي کتاب

# د اسلامي ښوونې او روزنې د تدریس لارښود

## دویم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ. ش.



**ليکوالان**

- فيضان الله «زربخش»
- ګل آقا «شائق»

**علمي او مسلکي ایډیټ:**

– محمد آصف کوچی

**د ژبې ایډیټ:**

– عبدالهادی روان

**ديني، سياسي او کلتوري کميټه:**

مولوی پیر محمد روحانی

**د څارنې کميټه:**

– دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب او د ښوونکو د روزنې مرستيال
– دکتور شير علي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول
– سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس.

**طرح او ډيزاين:**

_ عنايت الله غفاری او فيض محمد فياض





## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي — پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان
دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم

# د پوهنې د وزیر پیغام

**ګرانو استادانو او ښوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتو کیږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنو سره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودونو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده‌کړې په بهیر کې د زده‌کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده‌کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوی، ستاسو درنو استادانو د ګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کیږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او بریاوې ور په برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي، چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښتونو، د ټولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او تکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم، چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردک

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# لړلیک

**فهرست...... مخ**

## لومړی: لوست

## عنوان: اسلامي بنسټونه یا ارکان

**مخ: ۱**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن سم ولوستلی شي.
- کلمې سمې تلفظ کړی شي.
- د اسلام د بناوو سره آشنايي حاصل کړی شي.
- د اسلام بناوې له یاده وویلی شي.
- د اسلامي ارکانو (بناوو) سره علاقه وښيي.
- د اسلامي بناوو نومونه په ترتیب سره واخستلی شي.
- د خپلې پوهې په کچه د اسلامي ارکانو په ارزښت وپوهېږي.

**اړینه پوهه:**

نبی کریمﷺ فرمایلي دي: (بنی الاسلام علی خمس شهادة ان لااله الاالله وان محمدا رسول الله واقم الصلوة وایتاء الزکاة والحج وصوم رمضان) (بخاري و مسلم).

ژباړه: اسلام په پنځو ستنو (بنسټونو) بنا شوی دی: ګواهي ورکول په دې سره چې نشته د عبادت لایق پرته له یو الله څخه او په دې سره چې محمدﷺ د الله استازی دی، د لمانځه برپاکول، زکات ورکول، د کعبې شریفې حج کول او د رمضان روژې نیول دي.

پر موږ لازمه ده چې د ماشومتوب له وخته ماشومان د اسلام له ستنو او ارکانو سره آشنا او روږدي کړو، هغه ارکان چې د اسلام جوړښت پر هغو ولاړ دی او پرته له هغو نه کوم دین شتون لري او نه کوم اسلام. د اسلامي ارکانو (بنسټونو) په ښودنه کې د ساده او ماشومانه مثالونو وړاندې کول د لومړي ټولګي څخه تر دریم ټولګي پورې ډېر اغیزناک دي، لکه د اسلام تشبیه کول د یوې خیمې سره چې پنځه ستنې لري، د مینځ ستنه د طیبې کلمې څرګندوونکې ده چې له هغې پرته اصلاً خیمه درېدلی نشي، څلور نورې ستنې چې په کونجونو کې دي هغه د لمانځه، روژې، زکات اوحج څرګندوی دي چې د هرې یوې په لویدو سره خیمه یو لوري ته کږیږي.

**د تدریس طریقه:** په لوړ آواز سره د لوست ویل، تکرار، پوښتنې او ځوابونه.

**مرستندویه توکي:** د ښوونکي لارښود، تخته، تباشیر، چارت.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د سلام، روغبړ او د زده کوونکو له پیژندګلوۍ څخه وروسته زده کوونکو ته خپل ځان وروپیژني او د نوي ښوونیز کال مبارکي ورته وايي. وروسته د دویم ټولګي د ښوونې او روزنې د کتاب په هکله زده کوونکو ته څه ناڅه معلومات ورکوي او هغوی د دیني مسئلو زده کولو ته هڅوي او تشویقوي یې، وروسته د انګیزې پارولو لپاره د لاندې پوښتنو څخه یوه پوښتنه مطرح کوي:<br>۱ــ څوک کولای شي ووايي چې د اسلام ارکان (بنسټونه) څو دي؟<br>۲ــ څوک کولای شي د اسلام د پنځو بناوو (بنسټونو) نومونه واخلي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۳۰دقیقې | وروسته د لومړي لوست عنوان (د اسلام ارکان) په لوی خط د تختې پر مخ لیکي او لوست د الله په نامه پیلوي او د لوست متن په لوړ آواز سره وايي، وروسته د زده کوونکو پاملرنه را اړوي او لوست د دویم ځل لپاره دوی ته وايي او له دوی څخه غواړي چې کلمې ورپسې تکرار کړي له هغه وروسته په هر یوه زده کوونکي باندې لوست په لوړ آواز وايي.<br>بیا زده کوونکي په څو ډلو ویشي او ورڅخه غواړي څو د اسلام ارکان له یو او بل څخه وپوښتي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br><br>ځوابونه وايي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی د ډاډینې له مخې د زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کوي:<br>۱ــ د اسلام ارکان څو دي؟<br>۲ــ د اسلام ارکان کوم دي نومونه یې واخلئ؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي څو په کور کې د مور او پلار په مرستې سره د اسلام ارکان حفظ کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**دويم: لوست**

**عنوان: طيبه او شهادت کلمې**

**مخ: ۳**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن سم ولوستلی شي.
- د کلمو تلفظ په دقيقه توګه وکولای شي.
- د خپل فهم په کچه د طيبې او شهادت کلمو په ارزښت وپوهېږي.
- طيبه او شهادت کلمې حفظ کړي.
- د يادشويو کلمو سره آشنايي حاصل کړي.
- د ذکر شوو کلمو سره علاقه ومومي.

**اړينه پوهه:**

**«لااله الاالله» د جنت کلی:**

په رښتيا سره د جنت تر ټولو غوره او ګټوره کلي د توحيد کلمه «لااله الاالله محمد رسول الله» ده. او دا کمله د الله تعالی لویه پيرزوينه او د جنت کلي ده او په هغې ټولې چارې ولاړې دي، د خير او ښېګڼې د چارو بنسټ او تهداب دی، امام احمد رحمه الله په خپل «مسند» کتاب کې له حضرت معاذ بن جبلﷺ څخه روايت کړی چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي: (مفاتيح الجنة شهادة ان لا اله الا الله) يعنې د جنت کليګانې د «لااله الاالله» ګواهي ورکول دي.

ابونعيم د انسﷺ څخه روايت کوي چې «قال اعرابی: يا رسول الله مامفتاح الجنة؟ قال (لااله الاالله)».

يعنې يو بانډه چې له رسول اللهﷺ څخه پوښتنه وکړه ای د الله رسوله! د جنت کلي څه ده؟ ويې فرمايل: «لااله الاالله».

دا دواړه حديثونه که څه هم په خپلو سندونو کې ضعيف خو معناوې يې ثابت او صحيح دي او هيڅ شک پکې نشته، قرآني او نبوي ډېر نصوص يې تاييدوي.

د هغو له ډلې څخه هغه حديث چې په صحيح مسلم کې له حضرت عمر بن خطابﷺ څخه روايت شوی همدا مفهوم څرګندوي.

(قال رسول اللهﷺ: مامنكم من احد يتوضأ فيبلغ او فيسبغ، الوضوء ثم يقول اشهدان لااله الاالله وان محمدا عبده ورسوله الا فتحت له ابواب الجنة الثمانية يدخل من ايها شاء).

هر يو له تاسو څخه چې اودس کوي او بيا ښه بشپړ اودس وکوي او بيا ووايي: «اشهدان لااله الاالله وان محمدا عبده ورسوله» د هغه لپاره د جنت اته دروازې پرانستل کېږي له هرې يوې چې وغواړي جنت ته داخلېدلای شي.

نو دا صحيح او څرګند دليل دی په دې چې د جنت اته واړه دروازې د توحيد او شهادت په کلمو پرانستل کېږي.

**د تدريس: طريقه: توضيحی، سوال او ځواب، ډله ئيز او انفرادي.**

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیت | وخت |
| --- | --- | --- |
| مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي. | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>۱ــ څوک کولای شي ووایي چې اسلام څو ارکان لري؟<br>۲ــ څوک د اسلام د ارکانو (بنسټونو) نومونه اخیستلای شي؟<br>۳ــ څوک ویلای شي چې د اسلام لومړی بنا څه ده؟<br>۴ــ څوک کولای شي د تیر شوي لوست متن په جګ غږ سره ووایي؟<br>وروسته ښاغلی ښوونکی د نوي لوست عنوان «طیبه او د شهادت کلمې» په تخته لیکي او لوست متن زده کوونکو ته په لوړ آواز وایي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي. | ۵دقیقې |
| په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي<br>ځوابونه وايي. | بیا د لوست متن په زده کوونکو باندې لولي، وروسته زده کوونکي په څو ډلو ویشي او ورڅخه غواړي څو د یوې ډلې له غړو څخه یو د لوست متن په لوړ آواز ووایي او د ډلې نور غړي یې ورپسې تکرار کړي بیا دواړه کلمې له یو او بل څخه پوښتي.<br>د لوست په پای کې ښوونکی د دواړو کلمو (توحید او شهادت) فضایل زده کوونکو ته په ساده ژبه بیانوي ترڅو دوی ته یوه انګیزه او ذهنیت پیدا شي او دواړه کلمې له یاده ښې زده کړي. | ۳۰دقیقې |
| کورنۍ دنده ترسره کوي. | **ارزونه:**<br>۱ــ څوک کولای شي طیبه کلمه له یاده ووایي؟<br>۲ــ د شهادت کلمه څوک ویلای شي؟<br>۳ــ څوک کولای شي د لوست متن په لوړ آواز وویلای شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي څو د توحید او شهادت کلمې حفظ کړي. | ۱۰دقیقې |

## له دریم لوست څخه تر شپږمه پورې

## عنوان: تمجید کلمه

**مخ: ۵**

**وخت: لس درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن په سمه توګه ولوستلی شي.
- د لوست کلمې په ښه توګه تلفظ کړی شي.
- د خپلې پوهې په کچه د تمجید کلمې په ارزښت وپوهېږي.
- د تمجید کلمه حفظ کړی شي.
- د تمجید کلمې سره آشنایي حاصل کړی شي.
- د نوموړې کلمې سره مینه پیدا کړي.
- ددې کلمې ځینې فضایل وپیژني.

**اړینه پوهه:**

**د تمجید کلمې ځینې فضیلتونه:**

الله ﷻ دې کلمې ته ډېر زیات فضیلتونه او ځانګړي صفتونه ورپه برخه کړي دي، یعنې دې کلمې ته ډېر لوی مقام او لوړه درجه حاصله ده. او دا کلمه په لاندې څلورو جملو شامله ده: (سبحان الله، والحمد لله، ولااله الاالله، والله اکبر).

ددې کلمې د فضیلت او غوره والي په هکله ډېر روایتونه راغلي دي چې د الله په وړاندې ددې لوړه مرتبه ثابتوي. او څوک چې دا جملې د ورځې په اوږدو کې ووایي د دنیوي او اخروي له زیاتو ښېګڼو او ثوابونو څخه به برخمن شي.

امام مسلم د سمره بن جندب رضي الله عنه څخه روایت نقلوي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې د الله په وړاندې تر ټولو خوږې خبرې دغه څلور جملې دي که په هره جمله پیل کوئ پروانه لري: (سبحان الله، والحمد لله، ولااله الاالله، والله اکبر).

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب، ډله ئیز او انفرادي.

**مرستندویه توکي:** تخته، تباشیر، چارت او د ښوونکی لارښود کتاب.

د لوست بهیر:

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو لکه د ټولګي تنظیمولو، کورنۍ دندې کتلو، خاضرۍ اخستلو او داسې نورو چارو څخه وروسته د تیرو لوست ارزونه کوي. مثلاً: ۱ــ څوک کولای شي د تمجید کلمه له یاده ووایي؟ ۲ــ څوک کولای شي د تیر شوي لوست متن ولوستلای شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. ځوابونه وایي. |
| ۳۰دقیقې | وروسته د نوي لوست عنوان په تخته لیکي او د لوست متن په لوړ آواز زده کوونکو ته وایي. بیا وروسته د تمجید کلمه جمله، جمله په سمه توګه زده کوونکو ته لولي او زده کوونکي یې ورپسې بدرګه کوي. د لوست متن په زده کوونکو باندې په انفرادي توګه لولي. زده کوونکي په مختلفو ډلو ویشي او ورڅخه غواړي څو په خپلو کې له یو او بل څخه د تمجید کلمې په هکله پوښتنې وکړي. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي څو پوښتنې ورڅخه وکړي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. لنډیز ته غوږ نیسي ځوابونه وایي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:** ۱ــ څوک کولای شي د تمجید کلمه له یاده ووایي؟ ۲ــ څوک کولای شي د نوي لوست متن ووایي؟ **کورنۍ دنده:** زده کوونکو ته دنده ورکوي څو د تمجید کلمه په کورونو کې حفظ کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**اووم: لوست**

**عنوان: مجمل ایمان**

**مخ: ۱۳**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن په سمه توګه ولوستلی شي.
- د لوست کلمې په سمه توګه تلفظ کړی شي.
- مجمل ایمان وپېژني.

**اړینه پوهه:**

**د ایمان تعریف:**

ایمان په ژبه اقرار، په زړه باور او په جوارحو (غړو) سره عمل کول دي چې په عبادت او پیروۍ سره پیاوړی کېږي او په ګناه او نا فرمانۍ سره ضعیفېږي.

د ژبې اقرار داچې په ټولو مؤمن به څېزونو تلفظ وکړو. او قلبي اعتقاد او باور دا چې د الله په وجود، وحدانیت، نومونو او صفتونو چې هیڅ شریک او سیال نلري او همدارنګه په ټولو مؤمن به شیانو د زړه له کومې باور او عقیده ولرو. قلبي عملونه هم په ایمان کې داخل دي لکه د الله سره مینه، له الله څخه وېره، توبه، توکل او داسې نور.

همدارنګه د جوارحو (غړو) عملونه لکه لمونځ، روژه، فی سبیل الله جهاد، د علم طلب او نور د اسلام ارکان پر ځای کول دي.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب، انفرادي او ډله ایز.

**مرستندویه توکي: د ښوونکی لارښود کتاب، تخته، تباشیر او داسې نور...**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، احوال پوښتنې، ټولګي تنظیمولو، حاضري اخستلو او کورنۍ دندې کتلو څخه وروسته د تیر شوي لوست په هکله زده کوونکي ارزوي د بېلګې په توګه:<br>۱ـــ څوک کولای شي د تمجید کلمه په لوړ آواز وویلی شي؟<br>۲ـــ څوک د تمجید کلمه له یاده ویلی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وایي. |
| ۳۰دقیقې | وروسته د نوي لوست عنوان «مجمل ایمان» په مشقي خط په تخته لیکي او د لوست متن په لوړ غږ سره وایي وروسته هره کلمه جلا جلا ورته هجا او تلفظ کوي او بیايې په زده کوونکو تکراروي او مشکل ځایونه ورته شرح کوي او د پوښتنو موقع هم ورکوي.<br>بیا زده کوونکي په دوه ډلو ویشي څو یو د بل نه د لوست په هکله پوښتنې وکړي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ څوک لوست په لوړ آواز سره ویلی شي؟<br>۲ـــ د ایمان معنا څوک ویلی شي؟<br>۳ـــ مجمل ایمان څه ته وایي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>د لوست متن اجمالي ایمان حفظ کړئ. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**اتم: لوست**

## عنوان: په الله ﷻ باندې ایمان

**مخ: ۱۵**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- د آمنت بالله په معنا وپوهېږي.
- د الله په هکله یې ایمان پیاوړی شي.
- د الله شتون او وحدانیت درک کړي.
- وپوهېږي چې ټول شیان الله پیدا کړي دي.
- د الله په هکله یې مینه او علاقه زیاته شي.

**اړینه پوهه:**

د هر څه نه مخکې باید وپوهېږو چې نړۍ او څه چې په نړۍ کې دي لکه اسمانونه، ځمکه، ټول عالمیان او کاینات او ټول دنیوي او اخروي نعمتونه د الله تعالی په وجود، وحدانیت او قدرت ښکاره او څرګند دلیلونه او نښانې دي، نو کله چې ټول موجودات په ځانګړې توګه انسانان د الله په غوښتنه او اراده پیدا شوي نو باید یوازې او یوازې ددې ذات عبادت وشي او له همدې ذات څخه مرسته وغوښتل شي او هیڅوک ورسره شریک نکړو او خیر او شر هم له ده څخه وګڼو.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب، انفرادي او ګروپي.

**مرستندویه توکي:** د ښوونکی لارښود کتاب، تخته، تباشیر، چارتونه.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي، د بیلګې په توګه:<br>۱ــ څوک د مجمل ایمان متن له یاده ویلی شي؟<br>۲ــ څوک کولای شي د لوست متن په لوړ آواز وواییي؟<br>ښوونکی د نوي لوست د عنوان ټاکلو په هکله پوښتنه کوي: تر ټولو دمخه ایمان راوړل په چا باندې لازم دي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وایي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۰دقیقې | له دې وروسته د نوي لوست عنوان «په الله ﷻ باندې ایمان» په غټ خط په تخته لیکي بیا د لوست متن د زده کوونکو لپاره په لوړ غږ وایي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، هدف داچې د لوست متن په انفرادي او ګروپي توګه لولي او بیا زده کوونکو ته موقع ورکوي څو له ښوونکی او بیا له یو او بل څخه پوښتنې وکړي. | لنډیز ته غوږ نیسي |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ څوک د آمنت باالله معنا ویلی شي؟<br>۲ــ ټول موجودات چا پیدا کړي دي؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>له زده کوونکو غواړي څو لوست په کور کې په کتابچه کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## نهم: لوست

## عنوان: په پرښتو باندې ایمان

**مخ: ۱۷**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- په ملایکو ایمان ولري.
- د ملایکو سره محبت ولري.
- په ملایکو کې څلور مقربې ملایکې وپېژني.

**اړینه پوهه:**

مونږ ایمان او باور لرو چې ملایکې د الله ﷻ مخلوق دي او دوی ته یې ډېر مسئولیتونه ورسپارلي دي او دوی هم د سترګو د رپ په اندازه د الله نافرماني نه کوي او ټولې د الله امر ته همیشه چمتو دي، د هیڅ ګناه او نافرمانۍ مرتکب کېږي نه.

ملایکې په مختلفو دندو ګمارل شوې دي ځینې د الله له طرفه انبیاوو ته وحې راوړي چې رئیس او مشر یې حضرت جبرائیل علیه السلام دی. ځینې د انسانانو سره ملګرې او له دوی څخه ساتنه کوي او د انسانانو ټول کړه وړه او وینا ثبتوي، ځینې د روزۍ په ویشلو مشغولې دي، ځینې د مسلمانانو لپاره سپارښتنه کوي، هدف داچې مختلف کارونه انجاموي او اکثریه د انسانانو په خدمت کې لګیا دي.

الله ته نږدې او مقربې پرښتې څلور دي: جبرائیل، میکائیل، اسرافیل او عزرائیل علیهم السلام.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، پوښتنې او ځوابونه، انفرادي او ګروپي.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکی فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو او فعالیتونو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. د بیلګې په توګه:<br>۱ــ څوک کولای شي وواییي چې په الله ایمان راوړل څه مفهوم لري؟<br>۲ــ د ټولو شیانو پیداکوونکی څوک دی؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وایي. |
| ۳۰دقیقې | بیا د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي:<br>ــ څوک ویلای شي چې الله کوم مخلوق له نور څخه پیدا کړی دی؟ له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «په ملایکو باندې ایمان» په تخته لیکي، بیا د | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | لوست متن په لوړ آواز وايي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي، لنډه داچې لوست په انفرادي او ګروپي توګه لولي او بيا وخت ورکوي څو د لوست په هکله له يو او بل څخه پوښتنې وکړي. | لنډيز ته غوږ نيسي |
| ۱۰دقيقې | **ارزونه:**<br>۱ـ «وملئکته» څه معنا لري؟<br>۲ـ پرښتنې د چا مخلوق دي؟<br>۲ـ ايا ملايکې د الله نافرماني کوي؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو په آمنت بالله پسې وملئکته لفظ ياد کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لسم: لوست**

**عنوان: په اسماني کتابونو باندې ایمان**

**مخ: ۱۹**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- «وکتبه» لفظ یاد کړی شي.
- د آسماني کتابونو نومونه واخستلی شي.
- د قرآنکریم د تلاوت سره مینه وښيي.
- په اسماني کتابونو ایمان ولري.

**اړینه پوهه:**

موږ ایمان لرو چې الله ﷻ د ځمکې ملتونو ته پیغمبران علیهم السلام لیږلي دي او د خلکو د لارښوونې لپاره یې اسماني کتابونه هم لیږلي دي چې ټول د الله وحی او کلام بلل کیږي، مشهور کتابونه تورات شریف دی چې په موسی عليه السلام باندې نازل شوی دی، انجیل دی چې عیسی عليه السلام ته ورکړی شوی دی، زبور دی چې په داود عليه السلام باندې نازل شوی دی، قرآن کریم دی چې په محمد ﷺ باندې نازل شوی دی؛ په دې کتابونو برسېره سل صحیفې نورې هم په آدم عليه السلام، ادریس عليه السلام او ابراهیم عليه السلام نازلې شوې دي، خو دا ټول کتابونه او صحیفې په قرآن کریم باندې منسوخ شوي دي ځکه یوازنی کتاب قرآن کریم دی چې له هر ډول لاس وهنې او تحریف څخه ساتل شوی دی او الله یې په خپله د ساتنې ذمه وهلې ده. الله فرمایي: (إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ) او بل داچې په قرآن کریم کې د ټولو اسماني کتابونو مضامین او محتوا شتون لري نو ځکه هغوی ته اړتیا نه لیدل کیږي. او پرې ډاډمن هم نه یو چې ایا کومې خبرې د الله پکې پاتې دي او کومې د دوی علماوو پکې زیاتې کړې دي.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکی فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک ویلی شي چې «وملائکته» لفظ تر کوم لفظ وروسته راځي؟<br>۲ــ څوک ویلی شي «وملائکته» څه معنا لري؟<br>۳ــ څوک ویلی شي پرښتې له څه شي څخه پیدا شوې دي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۳۰دقیقې | وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان «اسماني کتابونه» په لوی خط په تخته لیکي زده کوونکي لوست ته متوجه کوي او لوست د الله په نامه پیلوي او زده کوونکو ته وايي چې په ده پسې یې تکرار کړي، بیایې په زده کوونکو باندې تکراروي او موقع ورکوي څو یو د بل څخه پوښتنې وکړي او ښوونکی یې غلطۍ ور اصلاح کوي.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ څوک «وکتبه» معنا کولای شي؟<br>۲ــ د اسماني کتابونو نومونه واخلئ؟ | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي<br>ځوابونه وايي. |
| ۱۰دقیقې | ۳ــ قرآن کریم په چا باندې نازل شوی دی؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي څو د آسماني کتابونو نومونه حفظ کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**یوولسم: لوست**

**عنوان: «په پیغمبرانو باندې ایمان»**

**مخ: ۲۱**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- «ورسله» کلمه حفظ کړي.
- د «ورسله» معنا وپيژني.
- د پیغمبرانو سره مینه ولري.
- په پیغمبرانو علیهم السلام باندې ایمان ولري.
- د لومړني پیغمبر او وروستني پیغمبر نومونه وپیژني.

**اړینه پوهه:**

موږ عقیده او باور لرو چې اللهﷻ په زرګونو پیغمبران مختلفو ملتونو او قومونو ته د لارښوونې لپاره رالېږلي دي ـــ موږ د ټولو سره مینه لرو او پر ټولو باندې درود او سلام وایو او د دوی ترمنځ توپیر نه کوو؛ ځکه ټول د الله له لوري ټاکل شوي دي او خپلو خپلو ملتونو ته یې د همدوی په ژبه د دنیا او آخرت ښېګڼې بیان کړې دي او ټول یې د الله توحید او د هغه احکامو ته رابللي او د ګناهونو او د الله له نافرمانیو څخه یې ژغورلي دي.

وروستنی پیغمبر حضرت محمدﷺ دی چې تر قیامته پورې بل پیغمبر دنیا ته نه راځي لکه څنګه چې قرآن نړیوال حیثیت لري همدارنګه حضرت محمدﷺ هم نړیوال پیغمبر او تر قیامته پورې به یوازې دده پیروي کېږي.

موږ باید د ټولو پیغمبرانو د ژوندانه طریقې د خپل ژوندانه لپاره نمونې او سرمشق وګرځوو همدا وجه ده چې الله د دوی قصې موږ ته په قرآن کریم کې نازلې کړې دي.

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب، انفرادي او ګروپي.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>۱ـــ څوک ویلای شي چې «وکتبه» څه معنا لري؟<br>۲ـــ څوک د اسماني کتابونو نومونه اخیستلای شي؟<br>۳ـــ څوک ویلی شي چې قرآنکریم په چا نازل شوی دی؟<br>ښوونکی وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي او وايي اللهﷻ د انسانانو د لارښوونې لپاره څه کسان ټاکلي دي هغوی په کومو نومونو یادېږي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۰دقیقې | د ځواب له اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «په پیغمبرانو باندې ایمان» په مشقي خط په تخته لیکي.<br>او د لوست متن زده کوونکو ته په لوړ غږ سره وایي او له زده کوونکو څخه غواړي چې ښوونکي ته په پاملرنې سره غوږ ونیسي ـــ بیا د دویم ځل لپاره لوست په لوړ آواز لولي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي ـــ بیا یو یو زده کوونکی د | لنډیز ته غوږ نیسي |
| ۱۰دقیقې | تختې مخې ته راغواړي او لوست پرې تکراروي.<br>بیا زده کوونکي په ډلو ویشي څو یو د بل څخه د اسماني کتابونو په هکله پوښتنې وکړي.<br>وروسته ښوونکی خپل زده کوونکي ارزوي مثلاً:<br>۱ـــ ورسله څوک ژباړلی شي؟<br>۲ـــ پیغمبر چا رالېږلی یا ټاکلی دی؟<br>۳ـــ د اولي او وروستني پیغمبر نوم واخلئ؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو «ورسله» د آمنت بالله په سلسله کې حفظ او په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ځوابونه وایي.<br><br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**دوولسم: لوست**
**عنوان: «د اخرت په ورځ ایمان»**
**مخ: ۲۳**
**وخت: دوه درسي ساعتونه**
**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- «والیوم الاخر» جمله حفظ کړي.
- په والیوم الاخر باندې ایمان ولري او شرح يې کړي.

**اړینه پوهه:**
مونږ ایمان او باور لرو چې ټول انسانان د قیامت په ورځ د دویم ځل لپاره ژوندي کېږي او دا کار د الله تعالی لپاره ډېر آسان دی ځکه لکه څنګه چې الله پرته له نمونې مونږ او ټول کاینات پیدا کړي یو نو له مرګه وروسته زمونږ پیدا کول لا آسانه کار دی.
د قیامت په ورځ مونږ ټول د الله حضور ته حاضرېږو او د خپلو کړو وړو په هکله به را څخه پوښتنې کېږي او مونږ به ورته د حقیقت او واقعیت سره سم ځوابونه وایو ځکه هلته که مونږ منکر شو خپل غړي به را باندې ګواهي راکوي ــ نو که په امتحان کې بریالي شو نو خپله کړنپاڼه به په ښي لاس راکړه شي او که په امتحان کې ناکام شو نو خپله کړنپاڼه به په چپ لاس د شا له خوا راکول کېږي.
د جنتیانو لپاره جنت سنګارېږي، پرښتې ورته زیري ورکوي او مؤمنان په ډېر احترام او دبدبې سره جنت ته بیایي. او په جنت کې له ډول ډول نعمتونو او مزو چړچو څخه برخمن کېږي.
باید دا عقیده هم ولرو چې جنت ته تلل د الله په فضل او مهربانۍ سره صورت مومي.
**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. د بېلګې په توګه:<br>۱ــ څوک کولای شي «ورسله» معنا کړي؟<br>۲ــ څوک ویلای شي چې پیغمبران د څه لپاره نازل شوي دي؟<br>۳ــ لومړنی پیغمبر څوک ؤ؟<br>۴ــ د وروستني پیغمبر نوم څوک اخیستلای شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۳۰دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي ایا د حساب او جزا ورځ بل په څه نامه سره یادېږي؟ وروسته د لوست عنوان «د آخرت په ورځ باندې ایمان» په تخته لیکي ــ بیا لوست زده کوونکو ته وايي او له زده کوونکو څخه غواړي څو لوست په ده پسې تکرار کړي او په لوست پوره وپوهېږي. | لنډیز ته غوږ نیسي<br>ځوابونه وايي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ څوک کولای شي «والیوم الاخر» جمله معنا کړی شي؟<br>۲ــ څوک ویلی شي چې د آخرت ورځ څه ده؟<br>۳ــ جنتیانو ته خپله کړنپاڼه په کوم لاس ورکول کېږي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دنده ورکوي څو «والیوم الاخر» جمله حفظ او په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**دي‌ارلسم: لوست**

**عنوان: «په تقدير ايمان»**

**مخ: ۲۵**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست متن په سمه توګه ولوستلی شي.
- وپوهېږي چې د ټولو څېزونو تقدير د الله په لاس دی.
- په ژوندانه کې د تقدير په ارزښت پوه شي.
- د تقدير په هکله يې پوهه پياوړې شي.
- په تقدير ايمان او باور ولري.

**اړينه پوهه:**

قدر يا تقدير د الله د علم او حکمت سره سم د کايناتو لپاره د يوه قانون او ټاکلې اندازې او برنامې ترسيمول دي. ځکه الله تعالی په هر څه برلاسی او عالم دی او څه چې وغواړي هغه ترسره کوي.

الله فرمايي: « إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ » القمر ــ ۴۹. يقيناً موږ هر څه په ټاکلې اندازې سره پيدا کړي دي.

رسول اللهﷺ فرمايي: (كل شئ بقدر حتى العجز والكيس اوالكيس والعجز) صحيح مسلم.

يعنې هر څه په تقدير کې لکيل شوي دي حتی هوښياري او بيوزلي.

**د تدريس طريقه:** توضيحي، سوال او ځواب، انفرادي، تکراري، ګروپي.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعاليتونو وروسته د تير لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک کولای شي د تير لوست متن په سمه توګه ولوستلی شي؟<br>۲ــ څوک ويلای شي چې په قيامت کې نيک خلک چېرته ځي؟<br>۳ــ څوک ويلای شي چې د آخرت ورځ کومه ورځ ده؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۳۰دقيقې | له ځوابونو اوريدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان «په تقدير باندې ايمان» په تخته ليکي وروسته د لوست متن په لوړ آواز سره وايي او بيا لوست ټوټه ټوټه په زده کوونکو باندې هم لولي. او جملې سره هجا کوي مثلاً ښوونکی ورته وايي «والقدر، خيره، وشره» کوم حروف دي؟<br>**ارزونه:**<br>۱ــ د «والقدر خيره وشره» جمله څوک ژباړلی شي؟<br>۲ــ څوک ويلای شي چې د خير او شر تقدير د چا له طرفه دی؟ | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډيز ته غوږ نيسي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۱۰دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>دنده ورکوي څو (والقدر خيره وشره) جمله حفظ او په خپلو کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**څوارلسم: لوست**

## عنوان: دويم ځلي ژوندي کېدل

**مخ: ۲۷**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن په سمه توګه ولوستلی شي.
- له مرګه وروسته ژوند وپېژني.
- له مرګه وروسته په ژوندي کېدو باور او عقیده ولري.

**اړینه پوهه:**

**له مرګه وروسته ژوندون:**

په دویم ځلي ژوندانه باندې ایمان او باور درلودل د اسلام او کفر ترمنځ د توپیر د سروخطونو څخه یو مهم خط ګڼل کېږي، په دې او بنسټیزه اسلامي مقوله او مفکوره باندې ډېر آیتونه او حدیثونه څرګند دلالت کوي او اسلامي امت بلکې ټول الهي شریعتونه ورباندې اجماع او اتفاق لري.

الله تعالی په قرآنکریم کې په دې هکله فرمایي: (اللَّهُ لا إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لاَ رَيْبَ فِيهِ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللّهِ حَدِيثًا).

ژباړه: نشته بل د عبادت لایق له یوازني الله پرته، خامخا به تاسو ټول د قیامت په ورځ راجمع کړي چې هیڅ شک په هغه کې نشته او څوک دی د الله نه رښتیني په خبرو کولو کې. (یعني تر الله رښتوني نشته).

همدرانګه الله په یاسین سورت کې فرمایي: (أَوَلَمْ يَرَ الْإِنسَانُ أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِن نُّطْفَةٍ فَإِذَا هُوَ خَصِيمٌ مُّبِينٌ - وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا وَنَسِيَ خَلْقَهُ قَالَ مَنْ يُحْيِي الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيمٌ - قُلْ يُحْيِيهَا الَّذِي أَنشَأَهَا أَوَّلَ مَرَّةٍ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيمٌ) ۷۷ــ ۷۹.

ژباړه: ایا انسان نده لیدلې (خبر نه دی) چې موږ هغه له نطفې نه پیداکړ او بیا هغه ښکاره شخړه کوونکی شو؟ اوس هغه پر موږ پورې مثالونه تړي او خپل پیدایښت هیروي، وایي څوک به دغه هډوکي را ژوندي کړي چې کله دوی وراسته شوي وي، ته ورته ووایه دا به هماغه ذات ژوندي کوي چې هغه مخکې دا پیداکړي وو او هغه د تخلیق په هر کار پوهېږي.

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیت | وخت |
|---|---|---|
| مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وایي. | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته زده کوونکي د تیر لوست په هکله ارزوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک کولای شي د تیر لوست متن په سمه توګه ووایي؟<br>۲ــ څوک ویلای شي تقدیر د چا له طرفه وي؟ | ۵دقیقې |
| په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي.<br>ځوابونه وایي. | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «دویم ځلي ژوندي کېدل» په تخته لیکي او د لوست متن زده کوونکو ته قرائت کوي او له دوی څخه غواړي چې غوږ ورته ونیسي. بیا یې دوهم ځلي وایي او دوی یې ورسره تکراروي. بیا یو یو تن د تختې مخې ته راغوړي او لوست ورباندې تکراروي.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ د «والبعث بعد الموت» معنا څوک ویلی شي؟<br>۲ــ ایا د آخرت ژوند مؤقتی دی که دایمي؟ | ۳۰دقیقې |
| کورنۍ دنده ترسره کوي. | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی دنده ورکوي څو «والبعث بعد الموت» حفظ او په کتابچو کې ولیکي. | ۱۰دقیقې |

**پنځلسم: لوست**

**عنوان: مفصل ایمان**

**مخ: ۲۹**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- مفصل ایمان وپیژني.
- مفصل ایمان له یاده وویلی شي.
- د مفصل او مجمل ایمان توپیر وکولای شي.
- په مؤمن به شیانو باور او عقیده ولري.

**اړینه پوهه:**

**مجمل او مفصل ایمان:**

مجمل ایمان کوم دی؟

ځواب: (آمنت بالله کماهو بأسمائه وصفاته وقبلت جمیع احکامه).

ژباړه: ایمان مې راوړی په یوازني ذات باندې لکه څنګه چې په خپلو نومونو او صفتونو سره نومول شوی او ټول حکمونه او لارښوونې مې یې منلې دي. مفصل ایمان څه دی؟

ځواب: مفصل ایمان دادی: آمنت بالله وملائکته وکتبه ورسله والیوم الاخر والقدر خیره وشره من الله تعالی والبعث بعد الموت.

ژباړه: ایمان مې راوړی په الله او په پرښتو د الله او په کتابونو د الله او په پیغمبرانو د الله او په آخره ورځ او په اندازه د خیر او شر چې د الله له طرفه دي او له مرګه وروسته په بیا را ژوندي کېدو باندې.

له دې اوو مومن به شیانو څخه که څوک یو هم نه مني او باور نه پرې کوي دیته مسلمان نه ویل کېږي ځکه له یو رکن څخه انکار د ټولو رکینونو څخه انکار ګڼل کېږي.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵دقیقې | کله چې ښاغلی ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو څخه وزګار شي نو بیا د تیر لوست ارزونه کوي د بېلګې په توګه وایي:<br>۱ـــ څوک کولای شي د لوست متن په لوړ آواز سره وو ایي؟<br>۲ـــ والبعث بعد الموت څوک ژباړلی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وایي. |
| ۳۰دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو په هکله پوښتنه کوي مثلاً مفصل ایمان څه دی؟ وروسته ښاغلی ښوونکی د نوي لوست عنوان «مفصل ایمان» په تخته لیکي ـــ او لوست پیلوي او لوست په لوړ غږ سره وایي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي. بیا د لوست یوه یوه کلمه ورته هجا کوي او حروف یې ورته ښیي. وروسته یې په څو ډلو ویشي څو د مفصل ایمان یو یو رکن ووایي او یو د بل څخه په دې هکله پوښتنې وکړي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي<br>ځوابونه وایي. |
| ۱۰دقیقې | بیا د لوست ارزونه کوي:<br>۱ـــ د لوست متن څوک ویلی شي؟<br>۲ـــ مفصل ایمان څوک له یاده ویلی شي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو مفصل ایمان حفظ او په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**شپاړسم: لوست**

**عنوان: قبر**

**مخ:**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- د قبر په ارزښت او مفهوم پوه شي.
- د قبر په هکله مثبته انګیزه پیدا کړي.
- وپوهېږي چې په قبر کې کومې پوښتنې کېږي.

**اړینه پوهه:**

**د حضرت عثمانﷺ ژړا د قبر په لېدلو:**

ترمذی له هانیﷺ څخه روایت کوي چې کله به حضرت عثمانﷺ پر قبر تیریده دریده، به او دومره به یې ژړل چې ږېره به یې لمده شوه، ورته وویل شوه کله چې جنت او دوزخ یادېږي ژړا نه درځي او کله چې قبر ووینې ژاړې؟! ده وفرمایل: ما د پیغمبرﷺ څخه اوریدلي دي چې فرمایل یې: قبر د آخرت له پړاوونو څخه لومړنی پړاو دی ــ که چېرې (انسان) له هغه څخه نجات ومومي وروستني پړاوونه په ټول پرې آسانه شي او که یې د قبر څخه خلاصون ونه موند نو وروسته پړاوونه ډېر شدید دي ــ زیاتوي چې د رسول اللهﷺ څخه مې دا هم اوریدلي دي هر منظرمې چې لیدلی قبر له هغه څخه ډېر وحشتناک او ویریدونکی دی ــ هانيﷺ وایي: له حضرت عثمان څخه مې اوریدلي دي چې د قبر په وړاندې به یې دغه شعر زمزمه کاوه:

فان تنج منها تنج من عظیمة والا فانی لا اخالک ناجیاً

یعنې که د قبر (له عذاب) څخه دې خلاصون وموند نو د ډېر لوی آفت څخه دې خلاصون موندلی دی او که نه تا کامیاب نه ګنم.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک کولای شي د تیر لوست متن په لوړ آواز سره ولولي؟<br>۲ــ څوک کولای شي مفصل ایمان له یاده ووایي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وایي. |
| ۳۰دقیقې | له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان (قبر) په تخته لیکي او لوست پیلوي او لوست په لوړ آواز وایي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، بیا یو یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي او لوست ټوټه ټوټه پرې وایي او ښوونکی یې غلطی اصلاح کوي.<br>**ارزونه:**<br>څوک لوست په لوړ آواز سره ویلی شي؟<br>څوک ویلی شي ووایي چې په قبر کې کومې پوښتنې کېږي؟ | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي.<br>ځوابونه وایي. |
| ۱۰دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**اوولسم**: **لوست**

**عنوان**: **د لمانځه شرطونه**

**مخ: ۳۷**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- د لمانځه شرطونه وپيژني.
- د لمانځه د شرطونو په مفهوم پوه شي.
- د لمانځه شرطونه عملاً اداء کړی شي.

**اړينه پوهه:**

د لمانځه له پيل څخه مخکې د اوو څېزونو مراعاتول لازمي دي چې هغو ته شرطونه يا بيروني فرضونه ويل کېږي. او په دې ډول دي:

۱ــ د بدن پاکوالی.

۲ــ د جامو پاکوالی.

۳ــ د لمانځه د ځای پاکوالی.

۴ــ د عورت پټول.

۵ــ د لمانځه وخت.

۶ــ په لمانځه کې قبلې ته مخ کول.

۷ــ نيت کول.

د بدن له پاکوالي څخه هدف دادی چې په بدن هيڅ ډول ظاهري يا باطني پليتي ونه ليده شي.

**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعاليتونو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک د تير لوست متن لوستلی شي؟<br>۲ــ څوک ويلای شي چې په قبر کې له انسان څخه څه پوښتني کېږي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۳۰دقيقې | له ځوابونو اوريدلو څخه وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي – د لمانځه د پيل څخه مخکې د کومو څېزونو شتون ضروري دی؟<br>وروسته د نوي لوست عنوان «د لمانځه شرطونه» په تخته ليکي او لوست دوه ځلې زده کوونکو ته وايي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي، بيا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د لمانځه شرطونه له يو او بل څخه وپوښتي.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ د لوست متن څوک په لوړ آواز ويلی شي؟<br>۲ــ د لمانځه شرطونه څو او کوم دي؟ | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډيز ته غوږ نيسي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۱۰دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو د لمانځه شرطونه حفظ او په کتابچو کې وليکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**اتلسم او نولسم: لوستونه**

**عنوان: د اوداسه فرضونه او د اوداسه عملي طريقه**

**مخ: ۳۷**

**وخت: څلور درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- د اوداسه فرضونه وپيژني.
- عملاً اودس وکولی شي.
- د اوداسه سره مينه او علاقه ولري.

**اړينه پوهه:**

اودس دیته ویل کېږي چې کله انسان د لمانځه اداء کولو قصد کوي نو لومړی خپل دواړه لاسونه په اوبو سره تربندونو پورې وينځي، بیا درې ځله مضمضه (په خوله اوبه تیرول) او درې ځله استنشاق (په پزه اوبه تیرول) کوي، له مسواک څخه هم استفاده نه هیروي ــ وروسته درې ځله خپل مخ وينځي او بیا درې ځله دواړه لاسونه سره له څنګلو وينځي ــ بیا خپل سر او غوږونه مسح کوي او په پای کې دواړه پښې سره له ښنګرو درې ځله وينځي.

**د اوداسه فرضونه په دې ډول دي:**

۱ــ د مخ پرېمنځل د ویښتانو له شنه کېدو څخه تر زنې لاندې او د غوږ له يو نرمي څخه د غوږ تر بل نرمي پورې.

۲ــ د دواړو لاسونو پريمنځل د ګوتو له سرونو څخه تر څنګلو پورې.

۳ــ د سر څلورمه حصه مسح کول.

۴ــ د دواړو پښو پرېمنځل سره له ښنګرو.

که له دې څلورو فرضونو څخه يو فرض يا په يوه غړي کې د يوې ستنې د سر په اندازه وچ ځای پاتې شي اودس يې نه صحيح کېږي.

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته، تباشیر، کوزۍ، اوبه او داسې نور...

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. د بیلګې په توګه:<br>۱ــ څوک ویلای شي چې د لمانځه شرطونه څو دي؟<br>۲ــ څوک کولای شي د لمانځه د شرطونو نومونه واخلي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۳۰دقیقې | له ځواب اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي مثلاً په اوداسه کې د څو شیانو وینځل ضروري دي؟ وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان «د اوداسه فرضونه» په تخته لیکي او لوست په لوړ آواز پیلوي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي ــ وروسته په ټولو زده کوونکو باندې عملي اودس کوي. اول ښوونکی د دوی په وړاندې اودس کوي څو دوی د اوداسه طریقه زده کړي.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ د اوداسه فرضونه څو دي؟<br>۲ــ د اوداسه د فرضونو نومونه واخلئ؟ | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۱۰دقیقې | ۳ــ څوک کولای شي عملی اودس وکړي شي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده سپاري څو اودس د مور او پلار په مرسته عملاً زده کړي او لوست په کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**د شلم لوست څخه تر اووه ویشتم لوست پورې**

**عنوان: لمونځ**

**مخ: ۴۱**

**وخت: شپاړس درسی ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن وویلی شي.
- د لمانځه فرضونه وپیژني.
- د لمانځه د اداء کولو طریقه زده کړي.
- د دوه رکعتي او څلور رکعتی لمونځونو په طریقه هم وپوهېږي.
- د لمانځه په ګټو وپوهېږي.

**اړینه پوهه:**

**لمونځ:**

لمونځ د الله ﷻ په وړاندې د ډېرې لوړې مرتبې او مقام څخه برخمن دی، لمونځ د هر عبادت څخه د الله په وړاندې محبوب او خوښ دی، الله ﷻ په خپلو بندګانو باندې پنځه وخته لمونځ فرض کړی دی چې په اداء کولو یې لوی ثواب حاصلیږي او پرېښول یې لویه ګناه ده.

په حدیث شریف کې راغلي دي: څوک چې ښه په ترتیب سره اودس وکړي او په ډاډه زړه لمونځ اداء کړي، د قیامت په ورځ یې الله تعالی ټول ګناهونه معافوي او جنت ته یې داخلوي او همدارنګه فرمایي: چې لمونځ د دین ستنه ده، چاچې په ښه طریقه لمونځ اداء کړ، دین یې محکم او محفوظ کړ او چاچې دا ستنه خرابه کړه دین یې ونړاوه، د قیامت په ورځ به د لمونځ کوونکي ټول اندامونه د لمر په شان ځلیږي او بې لمانځه کسان به ددې لوی نعمت څخه محرومه وي.

همدارنګه نبی کریمﷺ فرمایلي دي چې د لمونځ کوونکو حشر به د انبیاوو، شهیدانو او اولیاوو سره وي او د بې لمانځه کسانو حشر به د فرعون، هامان، او قارون سره وي.

کله چې اولاد د اوو کلونو شو نو شریعت حکم کوي چې دوی دې په لمانځه اداء کولو روږدي شي او کله چې دلسو کلونو شو نو د لمانځه په پرېښودو یې تأدیب کړئ. او دومره د لمانځه تاکید راغلی چې که په ولاړه مونشوای اداء کولای په ناستې یې اداء کړئ او که په ناستې مونشوای اداء کولی نو په څملاستو د سر په اشارې یې اداء کړئ.

**د لمانځه اداء کولو څرنګوالی او طریقه:**

د لمانځه اداء کولو لپاره مخ په قبله ودریږئ، نیت وکړئ الله اکبر (تحریمه تکبیر) ووایئ، امام دغه تکبیر او نور تکبیرونه د مقتدیانو د پاملرنې له امله په لوړ آواز اما مقتدیان یې ورو وایي، بیا د تکبیر تحریمه د ویلو په مهال خپل لاسونه د غوږونو تر نرمیو پورې پورته کوو او بیا لاسونه ټیټوو په خپل ښي لاس باندې چپ لاس نیسو او تر نامه لاندې یې ایږدو، په دې حالت کې نظر د سجدې په ځای اچوو او د ثناء او (سبحانک اللهم وبحمدک وتبارک اسمک وتعالی جدک ولااله غیرک) په

ويلو پيل کوو. وروسته «اعوذ بالله من الشيطان الرجيم ـــ بسم الله الرحمن الرحيم» خفيه وايو وروسته فاتحه سورت (الحمد لله) وايو وروسته د قرآن کريم څه برخه يا بشپړ سورت وايو. (البته د قرآن کريم څخه درې آيتونه او يا يو اوږد آيت کفايت کوي) مستحب داده چې د سهار په لمانځه کې اوږده مفصل سورتونه لکه د «ق» سورت څخه تر نبأ سورت پورې او د ماښام په لمانځه کې لنډ سورتونه لکه د الضحی سورت څخه تر الناس سورت پورې او په نورو لمونځونو کې مينځني سورتونه لکه د النبأ سورت څخه تر «الضحی» سورت پورې ولوستل شي.

امام د سهار، ماښام او لماسختن په لمونځونو کې قرائت په لوړ آواز سره وايي او په دوه نورو لمونځونو کې خفيه قرائت وايي.

وروسته تکبير وايو او رکوع ته ځو بيا په رکوع کې په خپلو لاسونو خپلې ګونډې محکمې نيسو، خپله شا هموار وو او د سر سره يې برابروو بيا «سبحان ربی الاعلی» يعنې پاکي ده زما اعلی پالونکي لره درې ځله وايو او بيا د «سمع الله لمن حمده» په ويلو سره له رکوع څخه سرجګوو نو کله چې ښه نيغ ودرېدو، «ربنا ولک الحمد» او وروسته د الله اکبر په ويلو سره سجدې ته ځو په سجده کې خپلې متې له بغلونو او خيټه له ورنونو څخه لرې ساتو (البته ښځې به يې سره چسپوي) او بيا په سجده کې خپل لاسونه د دواړو اوږو په برابرۍ ايږدو او بايد په داسې حالت سجده وکړو چې د پښو او دواړو لاسونو ګوتې مو د قبلې په لوري وي او په سجده کې درې ځله «سبحان ربی الاعلی» وايو بيا د تکبير په ويلو له سجدې راپورته کېږو، کيڼه پښه څملوو په هغه باندې کينو او ښۍ پښه دروو په داسې توګه چې ګوتې مو د قبلې په لوري وي.

وروسته دويمه سجده د لومړۍ سجدې په شان اداء کوو او بيا د تکبير په ويلو سره له سجدې څخه را پورته کېږو او دويم رکعت پيلوو، د دويم رکعت له اداء کولو وروسته د التحيات (تشهد) لپاره کينو او ښی لاس په ښي ورانه او چپ لاس په چپ ورانه ايږدو او دا عبارت وايو: «التحيات لله والصلوات وطيبات السلام عليک ايها النبی ورحمة الله وبرکاته السلام علينا وعلی عبادالله الصالحين اشهد ان الااله الاالله واشهد ان محمدا عبده ورسوله».

وروسته په دريم او څلورم رکعت کې هم د تکبير په ويلو پورته کېږو او لمانځه ته ادامه ورکوو ـــ البته په دوو وروستيو رکعتونو کې قرائت په جهر (لوړ آواز) سره نه وايو او يوازې فاتحه سورت لولو (تش يې اداء کوو) وروسته د وروستني تشهد ويلو لپاره په چپه پښه باندې کينو او ښۍ پښه دروو ــــ وروسته تشهد (التحيات) وايو وروسته (ابراهيمی) درود وايو په دې ډول: (اللهم صل علی محمد وعلی آل محمد کما صليت علی ابراهيم وعلی آل ابراهيم انک حميد مجيد اللهم بارک علی محمد و علی آل محمد کما بارکت علی ابراهيم وعلی آل ابراهيم انک حميد مجيد) وروسته دعا «اللهم ربنا آتنا فی الدنيا حسنة وفی الاخرة حسنة وقنا عذاب النار» وايو له دعا لوستلو وروسته «استغفرالله» درې ځلې وايو. او رپسې (اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت يا ذالجلال والاکرام ـــ لااله الاالله وحده لاشريک له ، له الملک وله الحمد وهو علی کل شئ قدير). او نورې دعا وې وايو.

**د تدريس طريقه:** تشريحي، عملي، تکرار او تمثيل.

**مرستندویه توکي:** جای نماز، جماعت، جومات.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست په هکله زده کوونکي ارزوي. لکه:<br>۱ـــ څوک ویلای شي چې د اوداسه فرضونه څو دي؟<br>۲ـــ د اوداسه د فرضونو نومونه څوک اخستلی شي؟<br>۳ـــ څوک کولای شي عملاً اودس وکړي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۳۰دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته د انګېزې په پیدا کولو سره زده کوونکي متوجه کوي او د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي: مورِ د څه لپاره اودس کوو؟ له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «د لمانځه اداء کولو طریقه» په تخته لیکي او لوست په لوړ آواز سره وایي، وروسته زده کوونکو ته د لمانځه طریقه شرح کوي عملاً د زده کوونکو په مخکې لمونځ کوي ـــ او بیا د لمانځه عملي طریقه په زده کوونکو باندې په انفرادي او ګروپي توګه اداء کوي او بیا له څو زده کوونکو څخه غواړي ترڅو د لمانځه عملي تمثیل وکړي. | ځوابونه وایي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ څوک کولای شي د لمانځه نیت ووایي؟<br>۲ـــ ثناء (سبحانک اللهم...) څوک ویلای شي؟<br>۳ـــ فاتحه سورت به څوک وویلی شي؟<br>۴ـــ د رکوع او سجدې تسبیحات څوک ویلای شي؟<br>۵ـــ ایا التحیات (تشهد) به څوک ووایي؟<br>۶ـــ څوک کولای شي رکوع او قعده (ناسته) تمثیل کړي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو د مور او پلار په مرستې سره د لمانځه عملي طریقه زده کړي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## اته ويشتم او نه ويشتم لوستونه

## عنوان: پنځه ګوني لمونځونه

**مخ: ۵۵**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د پنځه ګونو لمونځونو په ارزښت وپوهېږي.
- د پنځه ګونو لمونځونو نومونه وپیژني.
- د هر لمانځه په رکعتونو وپوهېږي.
- د لمانځه اداء کولو سره مینه او علاقه وښيي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو وروسته د تیر لوست په هکله زده کوونکي ارزوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک کولای شي «سبحانک اللهم» ووایي؟<br>۲ــ د رکوع تسبیحات څوک ویلی شي؟<br>۳ــ د سجدې تسبیحات کوم دي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۳۰دقیقې | وروسته د انګیزې په پیدا کولو سره له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي په یوه شپه ورځ کې څو ځله لمونځ کول پر موږ فرض دي؟ وروسته د نوي لوست عنوان «پنځه ګوني لمونځونه» پر تخته لیکي زده کوونکو ته یو ځل لوست په لوړ آواز سره وايي ــ وروسته د پنځه ګونو لمونځونو نومونه په انفرادي او ګروپي توګه په زده کوونکو وايي ــ همدارنګه زده کوونکو ته د هر لمانځه رکعتونه، فرض، سنت، وتر او نفل بیانوي او د تشو او ډکو رکعتونو په هکله معلومات ورکوي. | ځوابونه وايي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>ښوونکی د خپل اطمینان په خاطر زده کوونکي ارزوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک ویلای شي چې په یوه شپه او ورځ کې څو وخته لمونځ کوو؟<br>۲ــ د لمازدیګر لمونځ څو رکعته دی؟<br>۳ــ د لماسپښین لمونځ څو رکعته فرض او څو سنت دی؟<br>۴ــ د پنځه ګونو لمونځونو د وختونو نومونه واخلئ؟<br>۵ــ د ماښام د لمانځه رکعتونه څوک ویلی شي؟<br>۶ــ وتر لمونځ څه وخت اداء کېږي؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>دنده ورکوي څو د هر لمانځه رکعتونه حفظ کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**دیرشم: لوست**

**عنوان: د جماعت لمونځ**

**مخ: ۵۹**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- د جماعت له لمانځه سره آشنا شي.
- د جماعت د لمانځه ثواب وپيژني.
- د جماعت د لمانځه سره مينه ولري.

**اړينه پوهه:**

**د جماعت لمونځ:**

**باید وپوهېږو چې د جماعت لمونځ مؤکد سنت دی او په تنهايي لمانځه ۲۵ یا ۲۷ درجې زیات ثواب لري. او امام باید په اول قدم کې تر ټولو زیات عالم واوسي، وروسته د قرآن قاري وروسته د لمانځه په مسئلو پوه شخص که هغه هم نه وي بیا تر ټولو مشر د امامت حق لري او امام ته مناسبه ده چې لمونځ په داسې توګه اداء کړي چې مریض او ضعیف او حاجت لرونکی يې په نظر کې وي، نبی کریمﷺ فرمایلي دي: (صلوة الجماعة تفضل صلوة الفذ بسبع وعشرين درجة) متفق علیه.**

**نو څومره غوره ده چې مؤمن همیشه په جماعت او په جومات کې لمونځ وکړي څو دغه فضیلت وګټي او په هر قدم اجر هم ترلاسه کړي.**

**د تدریس طریقه:** تشریحي، سوال او ځواب، ډله ایز او تمثیل.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته زده کوونکي د تیر لوست په اړه ارزوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک کولای شي د پنځو لمونځونو د وختونو نومونه واخلي؟<br>۲ــ څوک ویلای شي چې د لماسختن لمونځ څو رکعته دی؟<br>وروسته د زده کوونکو څخه د نوي لوست د عنوان ټاکلو په نیت پوښتنه کوي:<br>کوم لمونځ ډیر ثواب لري د جماعت لمونځ یا په تنهایي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br><br>ځوابونه وايي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۳۰دقیقې | له ځواب اوریدلو وروسته د نوی لوست عنوان «د جماعت لمونځ» په تخته لیکي، زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او متن ورته دوه ځلې وايي او دوی یې ورپسې تکراروي. وروسته لوست په څو تنو زده کوونکو لولي ــ پوښتنو ته یې ځوابونه وايي او د جماعت د لمانځه عملي تمثیل ورته کوي. او دوی د جماعت لمانځه ته هڅوي. وروسته د خپل اطمینان په خاطر د لوست ارزونه کوي.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ ایا د جماعت لمونځ مستحب دی که سنت مؤکد؟<br>۲ــ د جماعت د لمانځه ثواب د تنهایي په پرتله څومره زیات دی؟ | لندیز ته غوږ نیسي.<br><br>ځوابونه وايي. |
| ۱۰دقیقې | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته امر کوي څو د خپلو پلرونو سره د جماعت په لمانځه کې برخه واخلي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**يوديرشم**: **لوست**

**عنوان**: **رښتينولي**

**مخ: ۶۳**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- د لوست متن ولوستلی شي.
- د رښتينولۍ په معنا وپوهېږي.
- د رښتينولۍ په ارزښت پوه شي.
- رښتينولۍ ته وهڅول شي.
- د رښتينولۍ سره مينه وښيي.

**اړينه پوهه:**

**رښتينولي او راستي:**

مسلمان رښتيني او د ښو کړو وړو خاوند وي، رښتينولي خوښوي، په ظاهر او باطن کې به تولو وينا وو او کړو وړو کې ځان په رښتينولۍ ملزم ګڼي، ځکه رښتينولي او صداقت انسان د نيکۍ لوري ته او نيکي د جنت لوري ته لارښوونه کوي او جنت ته تلل د مسلمان د لوړو موخو څخه ده. دروغ چې د رښتيا ضد دی، هغه انسان تباهۍ ته راغواړي او دوزخ ته يې کشوي او دوزخ ډېر بد ځای دی مسلمان له هغه څخه ويره لري او ځان ترې ژغوري رښتيا ډېرې خوږې ميوې لري چې رښتوني ورځني ګټه ترلاسه کوي.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵دقيقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعاليتونو وروسته د تير لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک کولای شي تير لوست ووايي؟<br>وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان ټاکلو په هکله پوښتنه کوي، د مسلمان غوره صفت له ايمان وروسته څه دی؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۳۰دقيقې | له دې وروسته د نوي لوست عنوان «رښتيا» د تختې په مخ ليکي او د نوي لوست متن زده کوونکو ته دوه ځلې قرائت کوي. او له زده کوونکو څخه غواړي چې په ده پسې يې تکرار کړي. وروسته يې په څو زده کوونکو باندې وايي او بالاخره د لوست ارزونه کوي:<br>۱ــ رښتيا او صداقت د څه شي سبب او لامل کېدای شي؟<br>۲ــ دروغ څه پايلې لري؟<br>۳ــ نبی کريمﷺ د رښتيا په هکله څه فرمايلي دي؟ | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډيز ته غوږ نيسي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۱۰دقيقې | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي څو د رښتيا په هکله د مور او پلار او ملا امام څخه معلومات لاس ته راوړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**دوه ديرشم: لوست**
**عنوان: د مور او پلار احترام**
**مخ: ٦٥**
**وخت: يو درسي ساعت**
**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په ښه توګه ولوستلی شي.
- د مور او پلار احترام پر ځای کړي.
- د مور او پلار خدمت او احترام په ځان لازم وګڼي.

**اړينه پوهه:**
د مور او پلار له حقوقو، پيروۍ او اطاعت او له دوی سره د احسان او نيکۍ په هکله معلومات او خبرتيا د ايمان له واجباتو څخه ده. ځکه مور او پلار د اولاد د وجود ظاهري لامل دي او د دوی لپاره يې ډول ډول زحمتونه زغملي، نو د هغو د جبران لپاره د دوی سره نيکي، احسان او ښه کړه وړه پر اولاد لازم دي چې لږ تر لږه هغه بالمثل معامله خو له دوی سره وکړي ــ او علاوه پر دې ټولو الله تعالی د دوی اطاعت د خپل عبادت او توحيد سره پيوست ذکر کړی دی ــ الله فرمايي: (وَقَضَى رَبُّكَ أَلاَّ تَعْبُدُواْ إِلاَّ إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ الْكِبَرَ أَحَدُهُمَا أَوْ كِلاَهُمَا فَلاَ تَقُل لَّهُمَآ أُفٍّ وَلاَ تَنْهَرْهُمَا وَقُل لَّهُمَا قَوْلاً كَرِيمًا * وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُل رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا) الاسراء ٢٣ــ ٢٤.
ژباړه: او ستا رب پريکړه کړې ده چې تاسې د بل چا عبادت مه کوئ مګر يوازې د هغه، له مور او پلار سره ښه چارچلن وکړئ، که له تاسره له هغو نه يو يا دواړه زړښت ته ورسيږي نو هغو ته اف قدرې مه وايه، مه هغوی ته په ترېوه تندي ځواب ورکوه بلکې له هغوی سره په درناوي خبرې کوه. او په نرمۍ او رحم سره د هغو په وړاندې مات غاړی اوسه او دا دعا کوه چې پروردګاره! پر دوی رحم وکړه لکه څنګه چې دوی له زړه سوي او خواخوږۍ سره په ماشومتوب کې زه پاللی وم.
**د لوست بهير:**

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ٥دقيقې | ښاغلی ښوونکی زده کوونکي له مقدماتي فعاليتونو وروسته د تير لوست په اړه ارزوي. مثلاً:<br>١ــ څوک کولای شي تير شوی لوست په لوړ آواز ووايي؟<br>٢ــ څوک ويلای شي چې پيغمبرﷺ د رښتيا په هکله څه فرمايلي دي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي. |
| ٣٠دقيقې | له ځوابونو اوريدلو وروسته د نوي لوست د عنوان معلومولو په اړه پوښتنه کوي، د الله او رسول نه وروسته د چا احترام لازم دی؟ بيا د عنوان «د مور او پلار احترام» په تخته ليکي ــ زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په لوړ غږ سره ورته وايي او ستونزمن ځايونه شرح کوي او د مور او پلار د درناوي په هکله دوی ته د دوی د سويې سره سم معلومات ورکوي او دوی د مور او پلار احترام ته هڅوي. وروسته د لوست په هکله دوی ارزوي: | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډيز ته غوږ نيسي.<br>ځوابونه وايي. |
| ١٠دقيقې | **ارزونه:**<br>١ــ پيغمبرﷺ د مور او پلار په هکله څه فرمايلي دي؟<br>٢ــ د مور او پلار د احترام په هکله مو څه زده کړل؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې له خپل ښوونکي څخه وغواړي چې د مور او پلار په وړاندې څه کول پکار دي؟ | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**دري دېرشم: لوست**

**عنوان: د ګاونډي حقوق**

**مخ: ٦٧**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- د ګاونډي حقوق وپيژني.
- د ګاونډي له حقوقو سره آشنا شي.
- د ګاونډيانو حقوق رعايت کړي.
- د ګاونډيانو په هکله مثبته انګيزه ولري.

**اړينه پوهه:**

مسلمان د ګاونډي حقوق او آداب پيژني او مني چې ګاونډی پر ګاونډي حقوق لري چې باید مراعات شي.

څکه الله فرمايي: (وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى وَالْجَارِ الْجُنُبِ) النساء ٣٦.

ژباړه: او له مور او پلار سره غوره رويه او چلند وکړئ، له خپلوانو، يتيمانو او مسکينانو سره نيک چلن وکړئ او له خپلوانو ګاونډيانو سره، له پرديو ګاونډيانو سره، د څنګ له ملګري سره.

رسول اللهﷺ فرمايلي دي: جبرائيل به ماته تل د ګاونډي د حقوقو په هکله نصيحت کاوه او دومره تاکيد به يې کاوه چې ما فکر کاوه چې ګاونډی به د سړي څخه ميراث وړي، او هم نبی کريمﷺ فرمايلي دي: څوک چې په الله او د قيامت په ورځ ايمان لري باید د ګاونډي احترام وکړي. متفق عليه.

بل ځای يې فرمايلي دي: څوک چې په الله او د قيامت په ورځ ايمان لري بايد خپل ګاونډي ته ځور ورنکړي. او بل ځای فرمايي: قسم په الله مؤمن نه دی، قسم په الله مؤمن نه دی، پوښتنه وشوه څوک يا رسول اللهﷺ؟ ويې فرمايل: هغه څوک چې ګاونډی يې د لاس او ژبې له ضرر څخه په امن نه وي.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ٥دقيقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعاليتونو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>١ــ څوک کولای شي تير لوست په لوړ غږ سره ووايي؟<br>٢ــ څوک ويلی شي چې پيغمبرﷺ د مور او پلار په هکله څه فرمايلي دي؟<br>بيا د نوي لوست د عنوان معلومولو په هکله انګيزه رامنځ ته کوي وايي کوم کسان چې زموږ سره په چاپيريال کې ژوند کوي د څه په نامه يادېږي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ٣٠دقيقې | له ځواب اوريدلو وروسته د نوي لوست عنوان (د ګاونډي حقوق) په تخته ليکي او لوست په لوړ آواز لولي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي ــ بيا يې په انفرادي توګه په دوی وايي او د ګاونډي د حقوقو په هکله معلومات ورکوي او بلآخره د لوست ارزونه کوي. | لنډيز ته غوږ نيسي.<br>ځوابونه وايي. |
| ١٠دقيقې | **ارزونه:**<br>١ــ څوک لوست په لوړ آواز لوستلی شي؟<br>٢ــ ګاونډی چا ته ويل کېږي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې وليکي. او د ګاونډي حقوق له ملا امام څخه وپوښتي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**څلور دیرشم: لوست**

**عنوان: د لویانو حقوق**

**مخ: ۶۹**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په ښه توګه ولوستلی شي.
- د لویانو حقوق وپیژني.
- د لویانو حقوق مراعات کړي.
- د لویانو قدر وپیژني او دوی ته په احترام قایل شي.

**اړینه پوهه:**

رسول اکرمﷺ فرمایلي دي: څوک چې زما د (امت) د لویانو احترام نه ساتي او زما په کوچنیانو شفقت او مهرباني نه کوي ــ زما له (امته) نه دی. سنن الترمذي.

همدارنګه فرمايي: د الله د لوی ګڼلو له نښو څخه دادي چې د بوډا مسلمان احترام او درناوي مراعات شي.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ د تیر شوي لوست متن څوک لوستلی شي؟<br>۲ــ د ګاونډي په هکله چې مونږ څه وویل څوک یې ویلی شي؟<br>بیا د نوي لوست د عنوان معلومولو لپاره پوښتنه کوي ــ د چاچې عمرونه زمونږ څخه زیات دي د څه په نامه یادېږي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br><br>ځوابونه وايي. |
| ۳۰دقیقې | وروسته د نوي لوست عنوان «د لویانو حقوق» په تخته لیکي ــ لوست په لوړ آواز وايي، کلمې یوه یوه سره هجا کوي ــ بیا لوست په یوه یوه زده کوونکي باندې وايي او بیا د دوی د سویې سره سم د لویانو حقوق ورته شرح کوي ورته وايي: باید د لویانو احترام وکړو ــ مثلاً د مشر ورور، د مشرې خور او د ټولو مشرانو قدر او احترام وکړو، دوی ته سلام واچوو، خبرو ته یې غوږ ونیسو، نصیحتونه یې واورو او داسې نور...<br>**ارزونه:** | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br><br>لنډیز ته غوږ نیسي.<br><br>ځوابونه وايي. |
| ۱۰دقیقې | ۱ــ پیغمبرﷺ د لویانو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ څوک لوست په لوړ آواز ویلی شي؟<br>۳ــ مشر یا لوی چا ته ویل کېږي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**پنځه دیرشم: لوست**

**عنوان: د جومات اداب**

**مخ: ۷۱**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست ولوستلی شي.
- د جومات آداب وپیژني.
- د جومات آداب رعایت کړي.
- د جوماتونو سره علاقه وښیي.
- د جومات ارزښت وپیژني.

**اړینه پوهه:**

**د جوماتونو پاک او ستره ساتل لازمي دي:**

مسلمان باید د جومات په نظافت او پاک ساتلو کې زیار وباسي او جوماتو نه له هر ډول پلیتۍ او نجاست څخه پاک وساتي ځکه جوماتونه د عبادت ځایونه دي باید په نظافت برسېره د جوماتونو احترام او درناوي هم وکړو دنیوي خبرې پکې ونکړو ان تردې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: که چا د ورک شي اعلان په جومات کې وکړ تاسو ووایي چې الله یې دې نه درپیدا کوي.

د جوماتونو د آدابو په هکله ډیر احادیث شتون لري د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي: (من اكل الثوم والبصل والكراث فلايقربن مسجدنا فان الملائكة تتأذى ممايتأذى منه الانسان).

یعنې: چا چې اوږه، پیاز او تره وخوړله زموږ مسجد ته دې نه نږدې کېږي ځکه ملایکې ځورېږي له هر هغه څېز نه چې انسان ورځینې ځورېږي.

نو باید جوماتونو ته بدبویه شیان رانه وړو بلکې جوماتونه په عطرونو او ښو بویونو باندې سنګار کړو. همدارنګه په جوماتونو کې باید بدن او لباس ته هم متوجه واوسو او د کار په جامو کې جومات ته رانشو.

دا هم باید ووایو چې جومات ته په داخلېدو کې ښۍ پښه دننه کړو او دا دعا ووایو: (اللهم افتح لی ابواب رحمتک) او د وتلو په حالت کې چپه پښه بیرون کړو او دغه دعا ووایو: (اللهم انی اسئلک من فضلک ورحمتک).

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ پیغمبر ﷺ د لویانو او مشرانو د حقوقو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ د مشرانو د حقوقو په هکله مو څه زده کړي بیان یې کړئ؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وایي. |
| ۳۰دقیقې | وروسته د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي: لمونځ باید په کوم ځای کې ادا شي؟ بیا د لوست عنوان «د جومات آداب» په تخته لیکي ــ لوست پیلوي او بالآخره د جومات ادبونه ورته شرح کوي او دوی هڅوي څو جوماتونه پاک او ستره وساتي ــ بیایې ارزونه کوي وایي: | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۱۰دقیقې | ۱ــ جومات د څه شي ځای دی؟<br>۲ــ څوک کولای شي د جومات د ننوتلو او بیرون وتلو دعاوې ووایي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>د جوماتونو د آدابو په هکله له خپل امام څخه پوښتنې وکړي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**شپږ دیرشم: لوست**

**عنوان: د روغتیا ارزښت**

**مخ: ۷۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- د روغتیا په ارزښت وپوهېږي.
- نظافت رعایت کړی شي.
- د خپلې روغتیا په قدر وپوهېږي.

**اړینه پوهه:**

اسلام روغتیا ته ډېره توجه کړې ده ځکه د الله عبادت او د الله حکمونه هم په روغ بدن ترسره کېدای شي، نبی کریمﷺ فرمایلي دي چې قوي (صحتمند) مؤمن له ضعیف او ناروغ مؤمن ښه غوره دی.

دا چې روغتیا او نظافت دواړه لازم او ملزوم دي، نو که غواړو چې روغ بدن ولرو باید نظافت ته ډېره توجه ولرو.

نبی کریمﷺ فرمایلي دي: (تنظفوا بکل ما استطعتم فان الله تعالی بنی الاسلام علی النظافة ولن یدخل الجنة الاکل نظیف).

یعنې: په هر اندازه چې کولای شئ نظافت ته پاملرنه وکړئ ځکه الله تعالی اسلام په نظافت بنا کړی دی او جنت ته یوازې پاکېزه او پاک داخلېږي.

نو نظافت او روغتیا په اسلام کې تر یو ځانګړي نظام پورې اړه لري ــ او په مسلمان لازمه ده چې روغتیا ته پاملرنه یو شرعي او دیني امر وګڼي او دواړه په هر حال او هر وخت او هر ځای کې مراعات کړي. په ځانګړې توګه هر سړی باید د خپلې غذا (خوراک او څښاک) په هکله زیاته توجه ولري چې له هر لوري پاک، حلال او د خوړلو وړ وي، خواړه باید ظاهراً او باطناً پاک او ستره وي او دومره وخوړل شي چې روغتیا ته ضرر ونه رسوي. او اوسني طب ثابته کړېده چې اکثره مرضونه د ډېر خوراک او ډېر خوب څخه پیداکېږي. خوب هم باید په مړه او ډکه خېټه ونشي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک ویلای شي چې جومات د څه شي ځای دی؟<br>۲ــ د جومات د داخلېدو او وتلو دعاوې څوک ویلی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وایي. |
| ۳۰دقیقې | له ارزونې وروسته د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي د الله عبادت په کوم حالت کې ښه ترسره کېدای شي؟<br>له هغه وروسته د نوي لوست عنوان «د روغتیا ارزښت» په تخته لیکي او لوست پیلوي او زده کوونکو ته امر کوي چې په لوړ آواز یې په ده پسې تکرار کړي ــ وروسته د صحت او نظافت په هکله زده کوونکو ته پوره معلومات ورکوي او دوی د خپلو ځانونو روغتیا او نظافت ته هڅوي وروسته د لوست ارزونه کوي: مثلاً: | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۱۰دقیقې | ۱ــ نبی کریمﷺ د روغتیا او نظافت په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ ایا د نظافت نه مراعاتول د څه شي لامل کېږي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**اووه دېرشم**: **لوست**

**عنوان**: **صلح**

**مخ: ۷۵**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- د صلحې مفهوم او معنا وپيژني.
- د صلحې په ارزښت وپوهېږي.
- صلح او پخلاينه د خپل ژوندانه سرمشق وګرځوي.

**اړينه پوهه:**

الله تعالی فرمايلی دي: (إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ) الحجرات ــ ۱۰.

یعنې مؤمنان ټول سره وروڼه دي نو د وروڼو ترمنځ صلح وکړئ.

همدارنګه الله تعالی فرمايي: (وَالصُّلْحُ خَيْرٌ) النساء ــ ۱۲۸. یعنې صلح او پخلاينه ډېر غوره عمل دی.

حضرت ابودرداء د نبی کریمﷺ څخه روايت کوي وايي: (قال رسول اللهﷺ الاخبرکم بافضل من درجة الصيام والصلوة والصدقة قالوا: بلی يا رسول الله قال اصلاح ذات البين وفساد ذات البين الحالقة لا اقول تحلق الشعر ولکن تحلق الدين) ابوداود و ترمذي.

یعنې نبی کریمﷺ وفرمايل ايا تاسې خبر نکړم د داسې کار څخه چې اجر او ثواب يې له روژې، لمانځه او صدقې څخه غوره وي؟ صحابه وو وويل: بلې ای د الله رسوله! وېې فرمايل: هغه کار د خلکو ترمنځ سوله او پخلاينه ده. او د خلکو ترمنځ اختلاف او دښمني خريونکې چاړه ده، نه وايم چې ويښته خريي بلکې دين خريي او له منځه يې وړي.

(وعن ابی ايوبؓ ان رسول اللهﷺ قال: لايحل لمسلم ان يهجر اخاه فوق ثلاث ليال، يلتقيان فيعرض هذا ويعرض هذا وخيرهما الذی يبدأ بالسلام) متفق عليه.

یعنې: له ابوايوبؓ څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ وفرمايل: مسلمان ته روا نده چې د خپل مسلمان ورور سره تر دريو ورځو زيات خفه واوسي چې کله سره مخامخ شي نو يو د بل څخه مخ واړوي او غوره يې هغه دی چې په سلام اچولو کې مخکې شي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي فعالیتونو څخه وروسته زده کوونکي د تیر لوست په هکله ارزوي. مثلاً:<br>۱ــ پیغمبرﷺ د نظافت په باره کې څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ پیغمبرﷺ د روغتیا په هکله څه فرمایلي دي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۳۰دقیقې | له ارزونې وروسته د نوي لوست عنوان معلومولو لپاره ښوونکی پوښتنه کوي آرام ژوند په څه کې دی؟ وروسته د نوي لوست عنوان «صلح» په تخته لیکي او لوست پیلوي دوه ځله یې وايي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي بیایې په زده کوونکو باندې وايي، وروسته ښوونکی د سولې په هکله پوره معلومات ورکوي. او د صلحې ګټې ورته ښيي، زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د سولې په هکله یو د بل څخه پوښتنې وکړي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ د لوست متن څوک په لوړ غږ ویلی شي؟<br>۲ــ اللهﷻ د سولې په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۳ــ سوله په اسلام کې څه ارزښت لري؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>د لوست متن دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ځوابونه وايي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**اته دیرشم: لوست**

**عنوان: د مسلمان خوی**

**مخ: ۷۷**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د لوست متن په سمه توګه ولوستلی شي.
- د یوه مسلمان ښه خوی خپل کړي.
- د مسلمانانو د ښو خویونو سره آشنایي حاصل کړي.
- په خپل ځان کې ښو خویونو ته وده ورکړي.

**اړینه پوهه:**

له حضرت انس‌ﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وفرمایل: په چا کې چې درې خویونه شتون ولري د ایمان خوږ والی به وڅکي: یو دا چې الله او رسول ورته تر هر چا نه خوښ او محبوب وي، بل دا چې د یو چا سره یوازې د الله په خاطر دوستي او مینه کوي، دریم داچې کفر ته بیرته ستنیدل چې الله د هغه نه ورته نجات ورکړی داسې بد او ناوړه وګڼي لکه چې اور ته ځان اچول بد ګڼي. متفق علیه.

عمار بن یاسر رضي الله عنهما وایي: په هر چا کې چې درې خویونه وي نو ایمان یې په ځان کې راجمع کړی دی:

عدالت خپلول، ټولو ته سلام اچول او د لوږې او تنکسې په مهال مال خرڅول.

ټولو ته سلام اچول د تواضع او عاجزۍ دلیل دی ځکه متکبر انسان د خپل کبر او غرور له وجې نه چا ته سلام اچوي او نه هر چا ته د سلام ځواب وایي.

**د لوست بهیر:**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي فعالیتونو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک ویلی شي د سولې په هکله الله تعالی څه مهرباني کړې ده؟<br>۲ــ د سولې په هکله څه معلومات لرئ بیان یې کړئ؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>ځوابونه وایي. |
| ۳۰دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته ښاغلی ښوونکی د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي: که غواړئ چې جنګونه او اختلافونه ورک شي څه پکار دي؟ وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان «سوله» په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي ــ لوست په لوړ غږ سره پیلوي او زده کوونکي یې ورپسې بدرګه کوي. او بیا یو یو زده کوونکی د ټولګي مخې ته راغواړي او لوست پرې وایي او د لوست یوه یوه کلمه وروباندې هجا او په تخته لیکي. زده کوونکي د املا سره روږدي کوي او بالآخره د مسلمان د خوی په هکله ورته پوره معلومات ورکوي او ورته وایي د مسلمان لپاره ښه خوی غوره ګاڼه ده باید مسلمان ښه خویونه خپل کړي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي.<br>لنډیز ته غوږ نیسي.<br>ځوابونه وایي. |
| ۱۰دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ رسول اللهﷺ د ښه خوی په هکله څه مهرباني کړېده؟<br>۲ــ د ښه خوی په هکله څو نښې ووایئ؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>د ښه خوی په هکله یو متل په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |